**د کتاب پېژندنه:**

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | يو داغ يو ټکور |
| ويناوال | : | افضل ټکور |
| خپرندوی | : | "هيله مجله" |
| کمپوزر | : | حفيظ الله |
| د چاپ کال | : | ۱۳۷٦ ل |
| د چاپ ځای | : | دانش کتابپلورنځی، ډهکي نعلبندي، قصه خواني، پېښور - پښتونخوا |

ح

# اهداء:

اروابناد اکادیمسن کاندید استاد محمد صدیق روهي ته چې هیڅ مې نه هېرېږي.

تکور

ح

# يو ځغلنده نظر

ياد دې سي چې زلفو کې دې پټ ومه
خومره ښکلې شپه وه درنه هېره شوه

ډېر ګران وروړ آصف صميم صاحب د ځوان شاعر افضل ټکور د شعرونو دا مجموعه چې چاپ ته تياره شوې وه، رالوسپارله چې ويې ګورم او څه وربانديې وليکم.

څرنګه چې د يوه ځوان شاعر د ځوانې طبعې تراوشات پکې راغونډ شوي وو، په دوه لاسي مې را واخيستله چې ويې لولم او خوند ترې واخلم، خو څه ليکلو ته مې د زړه پښې و پوړېدې، دا خکه چې زه له تقريظ ليکلو ويريږم، څو ډېر مجبور نه شم، د چا پر اثر څه ليکلو ته خان نه جوړوم، د دې خبرې علت هم دا دی چې زما په اند دا د نقاد کار دی، نه د شاعر. شاعر به ممکن له يوې مجموعې هغه بيتونه انتخاب کړي، چې اتفاقاً د ده په طبعه لګېږي او د ده له سبک او اسلوب سره څه نژدې والي ولري.

يېر شاعر که د هر سبک پيرو وي، ليږ او ډېر خپلې خانګړتياوې هم لري، له دې امله شاعر ته د شاعر په شعرونو نقد

کول که سمه خبره نه وي، گرانه خبره خو ضرور ده.

ما چې مجموعه را واخیسلته د لومړي مخ مطلع مې ولوسته، صمیم صاحب ته مې وویل: ان شاء الله یو څه خو به ورباندې ولیکم، ممکن مطلع به لیږه ډېره زما له اسلوب سره ورته وه چې تقریظ لیکلو ته یې وهڅولم، مطلع داسې وه:

جانانه یو محل دې په کمڅو ابادوم

پټنلۍ یمه جونګړه په لمبو ابادوم

د پورتني مطلع دویمه مصرع ډېره ښکلې ده خو متأسفانه لومړی مصرع هغسې نه ده، زما په خیال دویمه مصرع د لومړی مصرع لپاره د مدعا مثل کار ورکوي، که داسې وي نو بایده وو چې د کمڅو پر ځاي یې کتو ویلي واي خکه چې کمڅی له لمبو سره هیڅ اړخ نه لګوي، بر عکس کتل هغه هم د معشوقې کتل. که له لمبو سره تشبیه شي ډېره پر ځائ او مناسبه خبره به وي، په هر حال یو ښه خیال او ښهٔ شعر دی.

چې کله مې د څه لیکلو په نمط د کتاب پاڼې واړولې تر هر څه له مخه دې نتیجې ته ورسېدم، چې محترم لیکونکی یا هغه چا چې دا شعرونه راغونډ کړي دي له ډېرې بېړې یې کار اخیستی دی، د یاګانو ټکي خو یې بېخي پرېښي دي؛ بلکې ډېر خایه یې تر خینو حروفو توپ وهلي دي، د مثال په توګه لیکي:

لا تر اوسه دې په هاغه طمعه پايم

چې نېـــته دې پـــه نېټه بدلوله

د دويمې مصرع سکته په وازکومي نارې وهي، ممکن داسې په وي:

چې نيته دې په نېټه رابدلوله

يعنې يوه (را) يې هېره کړې ده.

دغه شان په يوه بل غزل کې ليکي:

دريغه دريـــغه د خپـــل په بېلتانه کې

د يعقوب غوندې شوم ړوند خو بينا نه

چې دلته هم ورنه سلامت "يار" هېر شوی دی، ممکن داسې وي:

دريغه دريغه د خپل يار په بېلتانه کې

د دغې غزلې ورپسې بيت هم ورنه په لوی لاس ناقص شوی دی ليکي:

په وعـــده يې نـــن سبا سبا پايم

ټول عمر شو ما تير شو خو سبا نه

دويمه مصرع به بنايي داسې وي:

عمر ټول تير شو په ما خو سبا نه

په يوه بله غزل کې د (دومره) په ځای (څومره) ليکل شوي وو چې د بيت معني له مينځه ورې وګوری:

دريېم

،خدایه دې وطن کې ولې له هر څه نه
وینه د انسان دومره ارزانه شـــوه

له ښه مرغه د ټکور صاحب شعرونه روان دي، په روان او سلیسو شعرونو کې که له لیکونکی څخه توري پاته هم شي، لوستونکی یې موندلای شي، که عیناً یې هغو توریو ته پام نه شي چې د شاعر په زړه کې وو، متبادل توري خامخا ورته مومي، په پېچلیو شعرونو کې د یوه حرف کمبود لویه ستونزه راولاړوي.

د ټکور صاحب د شاعرۍ تر ټولو ښه خصوصیت رواني او سادګي ده، وایي:

یارانو، نور خلك مې څله وژنیې
زما جانان به ما په خپله وژني
د دور دې ظلـــم تـــه څه ووایم
ما په یوه او تا په بله وژني
زموږ د مرګ یې فیصله کړې ده
هېڅ نه پوهېږو موږ به کله وژني

....

ایا دا مطالب تر دې روان ویل کېدای شوای؟

خپل وطن، خپله سیمه، خپل کلی، او محله او خپل کور هر چا ته تر هر څای په زړه پورې وي، دا څکه چې مینه ور سره لري او مینه هر شی ښکلی کوي خو له چا سره چې تر کور کلي هم

ډېره مینه لري، د هغه په غیاب کې کور کلی هم ورته پدیده ښکارېږي، دا مطلب په یوه معصومانه انداز داسې بیانوي.

آ د کل غونډې مالت مې

آ د گل غونډې محل مې

بې له تا چې پکې اوسم

په والله چې پدېده ده.

په بل بیت کې له روانو پېښو سر ټکوي چې نه یې روغ زړه ور پرېښي دی، نه روغ ذهن او نه روغ خیال، دا ځکه چې هر خوا ورته په وینو لړلي ښکاري.

زړه مې ژوبل

خیال مې ژوبل

ذهن ژوبل دې یارانو

هرې خوا ته چې نظر کړم هره لار په وینو سره ده

د زور، زیاتي خاوندان تر هري وسلې د نظر له خاوندانو څخه سترگه کوي، د حسن د خزانو ښاماران هم له نظر څخه ویرېږي ځکه وایي:

سترگې مې تړي چې یار ته مه گوره

دلته په رښتیا د نظر وېره ده

د زړه په رنځ اخته خلك یا په داسې نظام کې اوسېدونکی چې یوه لحظه هم په سر، مال او ناموس مطمئن نه وي، لکه په

تېرو دوو لسيو کې چې د افغانستان مجبوره ولس ژوند کاوه، شپه د دوزخ شپه او ورځ د بل محشر ويره را پيدا کوي، شاعر دې مطلب ته څه ښه اشاره کوي:

ډېرې مې په اوښکو شپې روڼې کړلې

بيا هم را سره د سحر ويره ده

د مأيوسۍ او نااميدۍ په روان حال کې چې شاعر په خپل ژوند کې د نېکمرغۍ د بيا راتلو تمه له زړه ايستلې ده، بيا هم په دې خوښ دې، چې که پر موږ تېره شوه، د راتلونکې نسل ورځ خو به ښه شي وايي:

د ژوند د سرو ګلونو د ښايست ناوې په راشي

ژوندون زما د کلي ماشومانو ته موسکی دی

خواني له مست او په عين حال کې له لوغړن مازيګر سره تشبيه کوي، د تکور صاحب ښه ابتکار دی.

د خوانۍ مست او لوغړن مازيګر

په انتظار د بېوفا تير شو

په لاندې مطلع کې شاعر په يوه غشي دوه مرغۍ ويشتلي دي، يعني دلته هم د شاعر په ژوند کې د اوسېدو کلی، هم د مړو کلی (پديده) چې دواړه يې معنی ورکوي.

ای غمه خوشحالي زما پر کلي راوله

جانان مې د زاړه قبر پر حلي راوله

جانان که يې د زاړه قبر خلې ته راشي، ټوله پديده په ورباندې وغوړېږي، دغه شان چې دا خبر يې کلي ته ورسيږي، په کلي کې به يې خوشحالي خپره شي چې اقلاً زموږ د کليوال مين خوارۀ خو له مرګه وروسته ابته نه شوې.

په دې وړه مجموعه کې دغه شان خوارۀ بيتونه نور هم شته چې لوستل غواړي.

په پای کې ښاغلي تکور ته ډېر عمر او ډېره حوصله غواړم.

په درناوی

محمد صديق پسرلی

۱۳۷٦/۷/۱۵ - پېښور

اووم

# په اورونو کې ګلونه

پوره دوې لسيزې کېږي چې د افغانستان پر ابراهيمي خاوره د عصر نمرود "سره" اورونه بل کړي، ذا اورونه په څپاند او ښېرازه پسرلي کې پيل شول او زمونږ د هېواد ښکلي پسرلي تر اوسه پرې سوځېږي او ګلونه پکې خاورې کېږي، پرې پرې هدې کېږي او اسرې پرې خاورې ايرې.

دې ناوجنو او قهرجنو حالاتو هر څه ناوجن او قهرجن کړل او هر څه يې اورني او ويرمن. په دې ترخ کې ادب هم قهر اميزه او جنګي بڼه غوره کړه، سره او شنه صفونه جوړ شول، او لکه څنګه چې د تورو (شمشيرها) مقابله روانه وه همداسې د تورو (حرفها) مقابله روانه شوه او د ادب په نرم، ادب ورېښمين او پاسته بستر هم د مرګ او ژوبلې کمبله وغوړېده. د هېواد د په کتاب کې د قهر او غصې يو نوی باب پرانيسل شو، نرم او پاسته الفاظ درانه او زيږه شول او د بمونو او راکټونو درانه غړونه يې په خپلو غيږو کې خوندي کړل.

د اورونو په دې لنبو کې را لوی شوي ځوانان تر هر چا زيات اور مزاجه او اور لګانه وو او د دوی شعرونه د جنګ ناوده شعارونه او د وژنې سرې قوماندې وې.

ورو- ورو له دې لنبو نه ګلونه هم په راټوکېدو شول، شعارونو د شعرونو په لور مخه کړه او ادب د هدف لاره ونيوه، زيږه الفاظ نرم

شول، خواږه شول پاسته شول، او د قهر او خښم په اغزنو بوټو کې یې د رنګینو مرسلو په شان خولې پرانستې او پاڼې یې وغوړلې.

ښاغلی تکور یو له هغو شاعرانو څخه دی چې د همدې اوړونو په غیږ کې یې ادبي ماشوم سترګې غړولې او د همدې دوو لسیزو یوه ادبي څېره او محصول دی ما چې د ده شاعري ولوسته واقعاً چې ساده هم ده او روانه هم، خوږه هم ده او پسته هم، د غاټول په شان یې د وخت داغونه هم په سینه شته او د نرګس په شان د مستۍ جامونه هم په غیږ کې لري، ده د اوړونو او ویړونو په زړه، زړه کې سفر کړی او هر څه ته یې ژور کتلي او بیا یې دا تولې ترخې او زیږې پېښې د خپل غزل او آزاد شعر په پسته غېږه کې د ادب په ژبه پلې کړې او د هنر په وربښمینه زانګو کې یې تالی ورکړې دي.

زه په دې اوړجنو او تاوجنو حالاتو کې د تکور دې شاعرۍ ته هغه ګلونه وایم چې له دې خوړلن نه را زرغون شوي او ققنسي غږ یې پوره کړی دی:

زه به زوړ شم، زه به مړ شم، زه به نه یم
خو شعرونه مې خدای مه کړه چې زاړه شي

ستاسو خوښه چې هر څه یې بولئ.

په مینه

حبیب الله رفیع

۱۳۷٦/۷/۲۱

حیات آباد، پېښور، پښتونخوا

نهم

# د ټکور مات کوډ شعرونه

ما ته ګران ټکور د "قاف" له اخوا نه ليکلي دي چې:

"څه مات ګوډ شعرونه مې د مجموعې په شکل برابر کړي دي، دراستوم يې که دې خوښ شول... او چرته مناسبه وه، ستاسې خپل او داستاد پسرلي يادښتونه که پرې وليکل شي، خوشحاله به شم، خو په دې شرط چې هماغسې... له انتقاد نه ډکه سريزه پرې وليکې".

ما چې ټولګه وکته، نو په دوو جالو کې کيناستم:

يوه خو دا چې دا شعرونه به رښتيا هم، لکه ټکور چې وايي مات ګوډ وي؟ او بل دا چې که مات ګوډ وي نو ګنې په ورته مات ګوډ ويلو به ټکور رښتيا خوشحاله شي؟ او که هسې ما ازمېيي؟

سوچ يوړم، تر يوې اوږدې سا راکښنې وروسته مې دا غوره وګڼله چې راشه يو ځل خو دا غونډ پسرلي صاحب ته يوسه، يو به که هغه در سره دا پېټی ټيم کړي، ورسره مې رفيع صاحب ته هم په ورسپارلو يوه خپلسري غوندې وکړه.

د هغوی دواړو استادانو د قلم د خولې استادانه مرغلرې دا دي ستاسې په مخکې دي، خو ما بيا هم ځان ته د لارې ايستو بری تر لاسه نه کړای شو، که څه هم پسرلي صاحب خو خپل قلم ته خپله ژمنه پوره کړې ده، خو رفيع صاحب لکه په ډېر ليکنه او ژر ليکنه چې د ګران انځور او اروښاد روهي غوندې نوم بدی دی، همداسې يې په اوبو کې لوټه ايسې او پرې تېر شوی دی، خو ما ته بيا هم د غره سر ته ختل رِا پر سر پاتې شول، اپريدي وايي: باران نه وريږده پکار دي او مسافر ته تلګ.

نو تکیه پر خدای:

د ښاغلي ټکور د شاعرۍ د دې ټولګې په شکور کې د غزل کلونه هم شته او د ازادې شاعرۍ هغه هم. ما چې تر دې دمخه په افغانۍ خپرونو کې وخت پر وخت د ټکور کومه خوره وره شاعري لوستې او یا مې ور سره دا اوسنۍ چې زیاتره تر جهادي خمسې (پیڅکلیزې) وروستۍ ده پر تله کړه، نو که خدای مې نه غلطوي، د ټکور د مشاهدې او تخییل رڼا راته پکې تته وښکارېده. لا به زه تېروتی یم او لا به دا وي چې تش (ستر ولس) بس ته چې څوک وخیژي، نو اریان شي چې پر کومه څوکۍ کینې؟ په ټولګه کې هم د ښو شعرونو چونګ او غوراوي لږ ګران غوندې شي.

که ښاغلي کره کتونکي ما د خپلې دعوې د اثبات لپاره پر یو څو بېلګو راوړو پرګنې، نو هغه به ورته زه داسې وړاندې کړم:

ما ته دا نیمګړتیا، د تخییل کمزوري او د هغې پخوانۍ کموالی له دې راولاړه شوې ښکارې، چې د پښتني غزل د سکنیت او رغښت لپاره چې د کوم چاپېریال او کوم ټولنیزي اغیز اړتیاوې، ټکور له هغو نه جلا کړای شوي، یعني د پښتو د غزل د ناوې لپاره زما په اند د مسکو هومره رنګین او شوخ چاپېریال درزي هغه جامه نه شي تیارولای، لکه په خپله زموږ خپل هغه.

زه د ښاغلي ټکور د غزلیزي ناوې د رنګیني او ښکلا د نظر ماتي لپاره یوازې د دغو یو دوو بېلګو سپېلني لوګي کوم:

ټکور که د رحمت شاه سایل غوندې د لرې پښتونخوا شاعر وای، نو ګړدودي، لیکدوه او قافیوي او خجیزه نیمګړتیا وربښل کېدای شوه، ځکه سایل به قافیه کې دا عیب نه ګني چې "تندی" او میکدې" سره قافیه کړي، خوله ټکوره دا تمه نه کېږي، چې د عبد العلي ارغنداوي غوندې دې ښځینه او نرینه ډېر ګړې (جمع) توپیر نه کړای شي.

یوولسم

ستونه دې په سترګو کې ښاغلي راوله
دا تللې ځواني بېرته لاس نيولې راوله

يا:

اى د زړه سويو اسويلو، د زړه نيمګرو حسرتونو
تکور نــه هاغــه لرې ليــلا ښــکلې راولـــه

(پرديسه مينه)

يا لکه:

تش د جانان نامه اخلمه ځمه
خلك پر کومه، زه پر کومه ځکه

(مخه ښخه)

دا خو هسي يو څو نظرماتي سپيلني وو او د دې لپاره مې ولوګول، چې يو خو خپل عادت او د قلم په وړاندې خپله ژمنه تر سره کړم او بل که تکور زما پر داسې سپين سترګی ما ازميې؛ نور چې زه هم ورته غج واخلم.

ګنې په ښو او خوښو شعرونو کې خو چې پسرلي يې هم ښيلکي راوړي، زما هم يکې د خوښې شعرونو ډېر دي، چې يو څو يې دا دي:

کوم داغ، کوم يو پرهر په مې د ميني کړم تکور
هر داغ چې مې کوګل کې شي موسکی، نه کوي کده

(وړمه)

که څه هم په دې لاندې ښيلګه کې نهيلي او ناميندي زياته ښکاري، خو د معشوق د زړه راماتولو اغيزه هم پکې شته:

هغه چې ستا د زړه تکور و ګلی
ډېر ارمانجن له دې دنيا تېر شو

(عمر)

دولسم

د اروابناد پژواك د دې غزلې:

په خندا كه ورته خوله د پرهار نه شي
مضحكه به بنه د تورې ګوزار نه شي

(حديث خون)

پر ځمكه يې د پاتكيز لوړ و ځوړ له منځه وړو لپاره څومره بنه علاج او خسمانه بنودلې ده:

كه يو څو مغرور سرونه پر دار نه شي
قافله به د بې لاريو پر لار نه شي

(قافله)

نور نو زه د بناغلي تكور دا شعرونه سره له دې چې دې يې په ارزونه كې مات مات ګوډ بولې، نه يوازې مات ګوډ نه بولم بلكې د دې شعرونو د تلپاتېينې او اغېزمنې په هيله ورته د خپريدو مباركي وايم.

بنېراز دې اوسي
محمد آصف صميم
ابدره واټ، پېښور
۱۳۷٦/۸/۲۴

# تاج محل

جـانـانـه یـو مـحـل دې پـه کـمـخـو ابـادومـه
پـتـنـګ یـمـه جـونـګـړه پـه لـمـبـو ابـادومـه
زړګیـه خیر صحرااوبیابان کې که دې شپـه ده
کـلا بـه درتـه زه د اسـویـلـو ابـادومـه
پـه کلـي کـې دوکـه ده، پـه ښارونو کې دوکه
زه تښـتـم ځـانـتـه کلی پـه میـرو ابـادومـه
د دور له یارانـو نـه چې لـرې یمـه ښـه یـم
یـو کـور ځـانـتـه پـه هاغو ځګو غرو ابادومه
نه خپله پکې اوسي، نه یې خیال دلته رادرومي
زړګیـه د یـار ځـلـی بـه تـر څـو ابـادومـه
جـانـانه خپله خیر دی په کنډر کې به اوسیږم
خـو تـا تـه تـاج مـحـل بـه د شـعـرو ابـادومـه
اشـنـاوې یې ـه یو ګـوزار مې زړه کله یخـیږي
مـاتـی درتـه پـه زړه د پـرهـرو ابـادومـه

# خیال

عـاشورا غوندې په ما هر یو اختر دی
لاتر اوسه مې ګرېوان په اوښکو تر دی
خېر هماغسې که وچې شونډې ګرځم
خو دا ستا پـه محبت زمـا بـاور دی
ورپسې یم رسوې کـه خرڅـوې مـې
ستـا د غونډې زنې خال زما رهبر دی
نـه یې زور، نـه زمـانـه شي بـدلولای
د خوشال(*۱) غوندې مې عزم لکه غر دی
د دکـن پېـغلې پـه سرو سترګو ژړېږي
چې هجري(**) ورځنې تللی په سفر دی
ای خـورو ورو راځـئ چې سره یو شو
ببېت نـېکه رانه په ګور کې مرور دی
"اطــاعــت د زورورو ځـکـه نــه کــړم
هر زورګیر دلته په زړه باندې کافر دی."

---

* خوشال خټك
* اشرف خان هجری

# لښته

چې به ما ورځنې سپینه خوله غوښتله
بند په بند به لکه لښته ماتېدله
دې قاصد خانه خراب خدای‌ړو څه ووې
نن مې بیا په زړه چې ډېره وربېدله
لا تر اوسه دې په هاغه تمه پایم
چې تېتمه دې په نېتمه یه بدلوله
ما وې زه به د منصور کیسه ژوندی کړم
چې مې ستا لو به د دار پر سر ویله
وران مالت،ژوبل احساس،ژوبل زړګې کې
بس یوازې به ستامینه اوسېدله
د پسرلي په نوم چې دلته خزان راغی
د چمن هره غوټی ورژېدله
یو تکور څه که جدا شو له یارانو
قافله خو هسې هم نه رسېدله

# دعا

تا مې په برخه شوګیرې کړې، لا خوشحاله نه یې
زمادې شپې خاورې ایرې کړې، لاخوشحاله نه یې
زما مدام لاسونه پورته په دعا وي تا ته
ته همېشه را ته ښېرې کړې، لا خوشحاله نه یې
داسې راګورې لکه ګورې چې دښمن ته کله
بدې خبرې راپسې کړې، لا خوشحاله نه یې
زه یم چې نه راځي په خوله مې چې له مرګه دې شه
ته مې د مرګ خبرې ښې کړې. لا خوشحاله نه یې
کومه ادا دې چې زما د هیلو کور ورانوي
هغه ادا هغه نخرې کړې، لا خوشحاله نه یې
ماوې چې ستازړه دې ټکورشي، زه دې ومرمه خیر
تا ته مې دا نارې سورې کړې، لا خوشحاله نه یې

# ګرېوانونه

اشــنا خـبره يـوه كــوه نـازونـه دې سـر وخـوري
پــه سوال او پــه زارۍ دا ديدنونه دې سر وخوري
چـې زه او تـه تـرې دواړه مـحبت كـولاى نه شو
د وخــت د رقيب خېلو بد نيتونه دې سر وخوري
چې څنو د جانان ته ترې يو ګل شكولاى نه شم
پـه كـار مې نه دي داسې بهارونه دې سر وخوري
لـه تيږې نه سخت زړه چې د يار نه شي نرمولاى
زمـوږ د بـد نـصيبـو دا شـعرونه دې سر وخوري
چې يارېږي نه خبرېږي،چې ريبار پرې نه رحمېږي
يـارانـو دا شـكېدلي، ګرېوانونه دې سر وخوري
پـه زړه اوپه سينه خو مې ځاى نه شته د زخمونو
دا تش هسـې پـه ژبـه ټكورونـه دې سـر وخوري

د استاد حمزه شینواري

د مرګ په ویر

اې زما ماشوم،
زما شهیده زړه،
ته بندي د ګور یې،
زه د کور بندي.
فرق په ما و تا کې دومره نه شته دی
***
تا ته تورې خاورې درکوي عذاب
ما ته د چا حسن راکوي عتاب
ته د لحد مړی، زه د ژوند مړی
فرق په ما و تا کې دومره نه شته دی
***
تا باندې پرتې که،
تورې خاورې دي.
ما باندې تیارې د تورو زلفو دي،
ته که د رڼا د سحر وږی وې،
زه د شا لیلا د دیدن تږی یم

فرق په ما و تا کې دومره نه شته دی

***

تا که په خپل زړه داغونه وړي دي
زه هم په زړګي داغونه ډېر لرم
ستا خوا کې پراته که بلا مړي دي
زه هم په والله لکه چې مړی یم
ته که موسېدی او موسکېدای نه شې
ما نه هم خندا،
ظلمونو وړې ده.
ته که له خپل ځایه،
خوځېدای نه شې
زما یې هم پښې راماتې کړې دي
فرق په ما و تا کې دومره نه شته دی

***

ته که په مرګي له موږه بېل شولې
زه په زور له تانه جدا شوی یم
تا که په لحد کې هم ژړلي دي
زه در سره سم،
په ژړا شوی یم،
تا که د وطن،
داغ په زړه وړی دی،
زه په خپل وطن کې بې وطنه یم،
ای زما ماشوم،

زما شهيده زړه
ته د گور بندی يې
زه د كور بندي
فرق په ما و تا كې دومره نه شته ذی

۱۳ / ۰۲ / ۹۳
مسكو

# هیلې

نــه پــوهیــږم چې دا ولې داسې چم شي
چې هرښکلي ته نژدې شم راته غم شي
زما هیلې چې دا ولــې نــه پــوهیــږم
راتــه ژاړي هــره شــپه چې شومه دم شي
نـورمې زړه کې ومنه نه شته دزړه سره
ښو غشیو تــه دې ووایــه چې سم شي
پر تمام عالم په مــنــده مــنــده تــیر شــي
غــم چې راشي زما کور ته دلته تم شي
ســل داغــونــه د زړګي به مې تکور شي
که موسکی راتــه لــه لــرې نــه صنم شي

۱۸/۳/۹۴
مسکو

# پر یکړه

که همدغه میخانه همدغه جام وي
نو زما دې ورته سل گزه سلام وي
د جانان غمونو دومره په عذاب کړم
چې لحد کې به مې مړی په ارام وي
دکابل خاوره لړراوړئ چې يې ښکل کړم
چې پرې ایښې به قدم زما گلفام وي
د شهید وطن شهید حسن ته ژاړم
غم لړلی مې سحر او هم ماښام وي
په دیدن پسې يې نن سبا مړ کیږم
که ترلی یار د خپلو شوندو لام وي
تر هغې پورې به خپل وطن ته نه ځم
چې واکمن په کې همدا ملا امام وي

۱۳/۵/۹۳

مسکو

# سوال

ما ویل چې دا به شم او دا به شم
"تا که راته وکتل باچا به شم"
ووایه څه کور خو دې ورانېږي نه
ستا یمه او ستا ومه او ستا به شم
پوه خو مې کړه ځنګه درنه هېر شولو
تا خو ویل در به شم رښا به شم
غم له ما نه مشر، زه ترې کشر یم
دا غم که مې مشر وي بوډا به شم
سوال د سپینې خولې مې وپه سترګوکې
پټ مې کړو له خلکو چې رسوا به شم

## مخه ښه

تــش د جـانـان نـامـه اخلـمـه ځـمـه
خلك پر کـومـه زه پر کـومـه ځـمـه
دا رقـیـبـان پــر مـا الـزام لګـوي
تنديـه نـور دې مـاتـــومـــه ځـمـه
نېك بختې وخت رانه په منډودرومي
يو ګل دې پاس پر پيکي ږدمه ځمه
زاهـده ړونـد خـو نـه يې ښه يې وينې
زه د جـانـان لـه لاسـه مـرمـه ځـمـه
دا انـتــهـا د ظـلـم نـه ده څـه ده
د ګل په خيـر وطـن پرېـږدمـه ځـمه
يـارانـو پـرې مـې ږدئ، له بل وطنه
يـو تـش سـلام يـار تـه لېـږمه ځمه
له ځوانـــيـمـرګـو ارمـانـونـو سـره
داغ د زړګـي تـــکـورومـــه ځـــمـــه

# زېرې

چې ظلمتو سره ګوزران کومه
خومره ساده يم چې ارمان کومه
په دې زړه چاودي اوخپه ماحول کې
زېرې د ژوند پر هر انسان کومه
د خپلو مړو هيلو په مړې هديرې
د رڼو اوښکو چراغان کومه
چې تار په تار کړلو د وخت ناداودو
ويار پردې خپل څيرې ګرېوان کومه
ناز د بې نازو خلکو ورم پر اوږو
هره شيبه ژوند پر نيران کومه
د بېلتون سختې به شي هلته ختمې
د زړه ټکور چې په جانان کومه

## فریاد

تر اوسه مې یقین و چې دلبر کوي ظلمونه
یارانو اوس پرې پوه شومه رهبر کوي ظلمونه
دعشق د عقیدې په نوم مې بیایي قتل ګاه ته
د دې کلي یاران خو سراسر کوي ظلمونه
په اوښکو، په آهونو فریادونو باندې څه
هم مور په دغه ښار کې، هم نهر کوي ظلمونه
نه تله دانصاف شته،نه انصاف چاکې پیدا شو
پر خوارو مینانو لر او بر کوي ظلمونه
پر مورباندې یې سیورې د دیوال نه شو پیرزو
هم شپه زموږ دښمنه ده، هم لمر کوي ظلمونه
حیران یمه د چا لمن ته لاس کړمه ور اوږد
ښایسته زموږ د کلي شو کافر، کوي ظلمونه
داغونه مې د زړه یوه شیبه نه شول ټکور
جانان په هر قدم په هر نظر کوي ظلمونه

## هوډ

هم په ورانو هم په سمه، درپسې یم
ای زما همزولیه غمه، در پسې یم
دیوسف مینه یې ماباندې ازمیښت کړه
د یعقوب غوندې ماتمه، در پسې یم
خدایږو کله خو به ساه را نه اخلې!
د اشنا خیاله ظالمه، در پسې یم
ستا د مړو سترګو او مړو کتو له غمه
که په هره شیبه مرمه، در پسې یم
نه په زور، نه په زارۍ مې زړه تکور شو
سوی لوی تر دی دمه، در پسې یم

# جونګړه

په موږه بد نصیبو د تور تم مهرباني ده
د یار د تورو زلفو پېچ و خم مهرباني ده
یارانو د دار لوبه خو لا نه ده ختمه شوې
چې نه مرو دا په موږه د ستم مهرباني ده
اشنا د موسپېدلو حق له موږ نه دی اخیستی
په غیر و غمازانو د صنم مهرباني ده
زماپه وران مالت ورانې جونګړې وران وطن کې
د مرګ او د سرو وینو دم په دم مهرباني ده
د زړه د پرهرونو د تکور امید یې نه شته
چې نن په غمازانو د مرهم مهرباني ده

# وعده

کړې دې وعده وه در نه هېره شوه
دا څنګه توبه وه درنه هېره شوه
ما وې چې پښتو به دې ثابته کړې
ستا پښتو کچه وه درنه هېره شوه
ښکلې په سبا سبا دې پوه شومه
دا هسې بانه وه در نه هېره شوه
تا وې صبر وکړه خیر دی را به شم
دا څه یارانه وه در نه هېره شوه
یاددې شي چې زلفو کې دې پټ ومه
څومره ښکلی شپه وه درنه هېره شوه؟
جار دې شم له سترګو ساقي واړوه
ډکه پیمانه وه درنه هېره شوه
یاره د سپرلي خویونه مه کوه
ستا خبر یوه وه در نه هېره شوه
اوس په څه تکور کړم دا زولن پرهر
تا ته یې اسره وه در نه هیره شوه

## ښېرې

يار د خپل زړګي مني، خو زما نه
تل ښېرې راته کوي، خو دعا نه
اوښکې وينې مې له سترګو هسې څاڅي
ټول عالم پرې شو خبر، خو اشنا نه
دريغه دريغه د خپل يار په بېلتانه کې
د يعقوب غوندې شوم ړوند، خو بينا نه
په وعده يې نن سبا بل سبا پايم
عمر ټول شو تېر ما تېر، خو سبا نه
ستا د مينې د ښايست له برکته
په قسمت زما ژړا ده، خندا نه
يو ټکور لاس پر نامه دی د يارانو
خو د دور ياران وايي رښتيا نه

# زلفې

دا لیـونـی سـترګـې دې راواړوه
قـتـل مـې کړه خاورې پر ما وا ړوه
مه شمـېره دانـې زمـا د اوښـکو نن
بـس خپـلې وعـدې پـه سبا واړوه
ژوند خو به تېرېږي که لمبې دي هم
تـه خو دې نـن زلفې پـه شـاواړوه
سترګوکې دې څه دي خو یو زه یمه
نـورو نـه دې مـخ بـې وف واړوه
تـېغ مې په زړه وله راته تم نه شې
دوه سلګی مې ژوند په خندا واړوه
راشـه "تـه" د زړه تـکـور ولـو تـه
خـاورې د طبـیـب پـه دوا واړوه

# تلوسه

چې د راتللو يې وعده پاتې ده
زړه کې مې ډېره تلوسه پاتې ده
غم يې کړه وينه را تـه وچه د زړه
پـه زړه ظالمه لا ويده پاتې ده
ربه وصال بـه د يار وشي که نه
د هجر شپه ډېره اوږده پاتې ده
ساقي ساده دی چې کاسې کړنګوي
ما نه خو عشق کې ميکده پاتې ده
په مخه ځم شا تـه لـه غمه ګورم
رانه پـه لار هغه ساده پاتې ده
تکوره غم د غلچکو سترګو دی
چې مې ګوګل کې سره لمبه پاتې ده

# ارادې

نن چې دستور د زمانې ماتېږي
خود به مې زړه کې وسوسې ماتېږي
اسمانه څه له مې په کاڼو ولې
په دې مې کله ارادې ماتېږي
ستا له غضب غضب ځواني نه لوګي
دلته د زړونو يارانې ماتېږي
په ماتور تم د حادثو را ولې
ستا چې پر مخ زلفې خورې ماتېږي
پښتون تنديه تيتوای دې نه شم
خير که دې هيلې پښتنې ماتېږي
ملنګه واخله جام د ترمو اوښکو
زما بد بخت لاس کې کاسې ماتېږي
څه به ټکور شي دا د زړو زخمونه
چې جانان کړې وې وعدې، ماتېږي

# قابیل او هابیل

یو بزرګ زموږ د کلي
راته ووې،
انسانانو چې ژوندون په سر کې پیل کړ،
خپلې خویندې یې ودولې،
قابیل هم د خپلې خور په محبت کې
د خپل ورور مړی ورپرې کړه
خو ډېر ژر شو پښېمانه،
ځان قاتل ورته ښکاره شو
د خپل ورور بې سا جسد یې
پر اوږو به ګرځولو
اوس چې موږه په خپل منځ کې
هره ورځ خپل ورونه وژنو
خو یو هم د بل په وژله،
کله نه شوو پښېمانه،
نه مو ځان ته قاتل ووې.

# لبنته

ته لکه ګل،
له خندا ډکه خوله غونچه شې،
خوشبويي خوره وره کړې،
ته لکه شعر،
د زړونو تل ته لار پيدا کړې،
بيا پرې جبر کوې،
ته لکه لبنته،
چې د چا پر ملا را پرېوځې
نو ملا ماته کړې،
خو ته پوهېږې،
خوشبويي دې موږ ته هم نه رسي
يوازې ته يې چې زما په زړګي جبر کوې
يوازې ته يې:
چې زما ملا دې په ځوانۍ کې داسې دوه نيمه کړه.



# تنهايي

زه يم، غم دی، تنهايې ده، توره شپه ده
خو ستا مينه مې د زړه د کور ډيوه ده
غواړي ما او تا له يو بله جدا کړي
د دې دور څه عجيبه فيصله ده
دم په دم راځنې وينې د زړه غواړي
د يار مينه څه بلا سرېخوره ده
د وصال په شپه دې هېر دي که په ياد دي
چې به تا هره خبر کړه، ما وې ښه ده
هېڅ تميز د ښه او بد کولای نه شي
دا دنيا راته ښکارېږي چې ړنده ده
له هغو خوږو يارانو نه لوګی شم
چې د خولې او زړه خبره يې يوه ده

# سندره

ما دې د مينې د وفا،
او د ښايست سندره،
د زړه په وينو،
او د شعر په ژبه،
ان سر تر پايه پورې وليکله،
خو:
کاشکې چې تا زما د شعر يوه نيمه کرښه
کله له ځان سره لوستلې خو وای.

# دعاګانې

نن دې ارواګانې را ته قتل شوې
وې خو دعاګانې، راته قتل شوې
ځله دې مقتل ته روان کړی یم
سترګې ساده ګانې راته قتل شوې
دې د غم سپرلي کې خله وګورئ
پاکې ارزوګانې راته قتل شوې
ګوره پښتنې خو داسې نه کوي
اوس دې حیاګانې راته قتل شوې
ما دې مخ ته سم کتلي نه وو لا
بیا دې خنداګانې راته قتل شوې
زړه مې تکور نه و چې ته لاړلې
حسنه دنیاګانې راته قتل شوې

# تکه

د رقیب خپلو واکمني راغلله
پر ما د غم مهرباني راغلله
ستا له لیمو نه به یې ځار کړمه بیا
که پس له مرګه مې ځواني راغلله(۱*)
خوا د جانان راباندې یخه نه شوه
که هره ساه مې الواني راغلله
تش مې خبر ورته د مینې وکړه
پر سر مې تکه اسماني راغلله
د چمن مړاوې غوټۍ وغوړېدې
چې ستا د زلفو خوشبویي راغلله

---

* پس له مرګه به یې هم له تا قربان کړم
که صورت مې خدای پیدا که په محشر بیا
رحمن بابا

# سپورې زلفې

هره شپه په انتظار کې راته لويه شوګيره ده
زه له چا نه ګيله نه کړم خپله برخه مې سپېره ده
ستا د مينې تصور کې د اغزو پر پوليو شپې
هره سا مې تږې تږې، سوې لوې مې ناره ده
که نن نه وي، نو سبا به مې دمرګ استازی درشي،
ستا بېلتون چې راته ايښی په تندي د غم اره ده
ا د ګل غوندې مالت مې ا د ګل غوندې محل مې
بې له تا چې په کې اوسم په والله چې هديره ده
زړه مې ژوبل،خيال مې ژوبل، ذهن ژوبل دی يارانو
هرې خوا ته چې نظر کړم هره لار په وينو سره ده
څنګه نوم د رڼا واخلم د تيارو په شيش محل کې
ستا د سپورو سپورو زلفو شپه زما پر زړه خوره ده
ستا د ګورو ګورو زلفو، د بڼو د شپول له لاسه
زخمي شوې مې سينه ده پرې چاودلې مې زاره ده
چې به ستا دزړه ټکور و چې به ستا دسترګو تور و
خدايږو ستا په جدايۍ کې خاورې کړې يې اسره ده

# عذاب

زه ژوندی مړی یمه
لکه یو مړی چې په قبر کې یوازې پروت وي
داسې هم زه،
یوازې پروت یم هره خوا مې دېوالو نیولې،
لکه یو مړي ته،
د قبر دېوالونه چې عذاب ورکوي،
داسې هم ماته،
زماکور هومره عذاب راکوي.

۱/۲/۹۱

کابل

# فیصله

یارانو نور خلك مې څله وژني
زما جانان به ما په خپله وژني
د دور دې ظلم ته څه ووایم؟
ما په یوه او تا په بله وژني
زموږ د مرګ یې فیصله کړې ده
هیڅ نه پوهیږو موږ به کله وژني
موږ لیوني د پکې مینې یه نوم
نن مو بې وخته بې اجله وژني
رقیبان یو شول د جانان د کلي
اوس به مو خدای یږ وبې منزله وژني
حیران یم چا راته ښېرې کړې دي
چې مې بې ځایه بې مقتله وژني

# لمبې

پروت یم د غم پر لمبو خوب کومه
ستا د ستم پر لمبو خوب کومه
په دې نیمګړي ژوند خوشحاله نه یم
قلم قلم پر لمبو خوب کومه
راته و نه خاندې د ناز مېرمنې
زه د ماتم پر لمبو خوب کومه
هوسه پام کوه چې و نه ژاړې
عشقه زه سم پر لمبو خوب کومه
ساقي د جام منت دې نه منمه
د زیر او بم پر لمبو خوب کومه
وصله چې پس له مرګه هم رانه شې
هجره زه ځم پر لمبو خوب کومه
یاره تکور دې نه شي دا زخمونه
زه چې د چم پر لمبو خوب کومه

# کالیزه

کلونه مخکې،
پر همدغه ورځې
د سهار پر وخت، له لمر خاته نه مخکې
زما او ستا د زړونو پاکه مینه وزیږېده
هغه ماشومه وه را لویه شوله،
ما او تا دواړو،
دا خپله مینه داسې وروزله،
چې لا تر اوسه پېغله شوې نه ده،
خو،
د وخت نادودې، د زمان څپېړې
ما او تا نه پرېږدي چې دواړه سره،
د تنکۍ مینې،
د پېغلتوب نازونه هم ووینو.

# ناکام

زړګیـه کـړي چـا دي بـې اتـبارو سره کلي
ريښتياوايي چې نه کيږي اغيارو سره کلي
يـارانـو لـه ادمــه تـر دې دمـه رانيـولـې
غـريب دي چـېرته کړی دنيا دارو سره کلي
د ميـنـې د ښـايـست او د وفا له بـرکـتـه
کـومـه لـه نـاکـامـه له بې لارو سـره کلي
په زړه اوبه خاطرکې به يې رحم پيدانه کړي
کومه دلتـه داسې لـه خونخوارو سره کلي
کوي چې راتـه ستا د پښتنو سترګو خبرې
پـه دې تـمـه کـومـه لـه ريـبارو سـره کـلي
د مـيـنـې د وفـا جنـازه وختـه پـورته شوې
سـاده يـمـه چې کړم له جفاکارو سره کلي
تـکور سره خو هر اشنا مطلبه پورې يار وي
قسـمـتـه نـه شي داسې مطلب دارو سره کلي

# مینه په قلم

مینه مې رګونو کې
مینه مې په وینه کې
مینه په قلم کې مې،
لیك ده له ازله نه،
مینه مې احساس کې،
مینه مې په زړه کې،
په ټوپونو ده،
ځکه نوم د مینې سره ژوند کوم.

# پوښتنه

مور تپوس راځنې وکړو
کوم څیزونه دې خوښیږي؟
ما ځواب کې ورته ووې:
چې دا دری څیزه مې خوښ دي
ژوند، مینه او ښکلا
هغې بیا پوښتنه وکړه،
کوم څیزونه دې بد ایسي؟
ما ځواب کې ورته ووې:
دري څیزونه مې بد ایسي،
چې دي،
مرګ، وینه، او ظلم

# تنده

زموږ په کلي کې هر څه شته دي خو مینه نه شته
په کې ترخه او هم خواږه شته دي خو مینه نه شته
دلته چې هر چا ته نژدې شم رانه لرې تښتي
یارانو ښکلي دلته ښه شته دي خو مینه نه شته
زه یم غریب اشنا په خپل حسن غاوره دی ډېر
ډېر ارمانونه مې په زړه شته دي، خو مینه نه شته
د مینې تږو د عمرو تنده مو ماته نه شوه
د وخت یزید سره اوبه شته دي، خو مینه نه شته
نه یې شملې شته نه یې پت نه د میړانې کیسې
منم چې دلته پښتانه شته دي خو مینه نه شته
د زړه ګیلې په اوښکو مینځم څه د زړه په وینو
د جانان سترګې او لیمه شته دي،خو مینه نه شته
د زړه ټکور د سترګو تور اشنا مې وژني خلکه
قاتل اشنا سره بانه شته دي، خو مینه نه شته.

# د روزګار غمونه

د یار غمونو،
د روزګار غمونو،
په مخه کړی یمه،
چرته چې ځم چرته چې اوسم،
راپسې دي.
د زړه وینې مې خوري،
هېڅ خبر نه یم،
چې له دې سوو سلګو او ارمانونو نه، به،
زه په ټول عمر کې،
یو ځلې په خندا شم که نه؟

# وېره

تا وې چې را نه شې، د سر وېره ده
دا کلي دي ډك له خطر، وېره ده
سترګې مې تړي چې يارته مه ګوره
دلته په رښتيا د نظر وېره ده
يار چې لري دا حسن او دا غرور
اوښکو چې را نه شی بهر، وېره ده
ډېرې مې په اوښکو شپې رڼې کړلې
بيا هم را سره د سحر وېره ده
ځنګه دې بې دريغه په زړه وويشتم
اوس چې مې د لر او د بر وېره ده
ځم به د وصال په اميد څېرې زړه
خبر که په دې لار د سفر، وېره ده
نن به دې زخمي زړګی ټکور کړمه
مه وايه چې بيا د پرهر وېره ده

## پو ښتنه

نه پوهیږم چې په ژوند کې
یوه ورځ به داسې راشي
چې زه ستا مخې ته کینم
ته زما مخې ته کینې
ته فریاد کړې له نصیب نه
زه فریاد کړم له رقیب نه
ته زما سترګو ته ګورې
زه دا ستا سترګو ته ګورم
بس همدومره درته وایم:
"اییني ته دې کتلي دي که نه
خپلې سترګې دې لیدلې دي که نه؟."

# داغ

مه راګوره ګورو بـه چې څـه کېـږي
ښکاري چې یارۍته دې زړه نه کېږي
پـوه نـه یـمـه تـا تـه چې نـژدې شمه
رېـږدمـه، لـه ډاره مې سـاړه کـېـږي
دومـره دې د میـنـې لېـونی یــمـه
بـد کـه راتـه وایـې وایـم ښـه کېـږي
ستـا د مغـولـي خـویونو کـلي کې
کـلـه ګــوزاره د پـښـتـانـه کـېـږي
ګوره تار په تار مې شول ملګري ټول
ژونـده جـام د زهرو ته مې زړه کېږي
ستامینې مې داغ پر زړګي ایښی‌دی
ستا یوې ادا تـه مـې اسـره کـېـږي

# ژوند

ژوند لکه پېتۍ زما
د دې دنیا له غرونو درونډ دی،
خو،
دا درونډ پېتۍ پر شا ګرځوم
هره شیبه دا تصور کومه،
چې دا درونډ پېتۍ،
ما یوازې پرېږدي.

# پسرلي ته

سپرلی که د چمن سوداګرانو ته موسکی دی
ښایست موږ بد نصیبو لېونیانو ته موسکی دی
دا ستا تشه خندا زموږ وژلو لره بس ده
قاتل څله زموږ غونډې خوارانو ته موسکی دی
د ژوند د سرو ګلونو د ښایست ناوې به راشي
ژوندون زما د کلي ماشومانو ته موسکی دی
خبر نه یم کرم یې څنګه سترګو کې پیدا شو
ساقي چې میخانه کې میخوارانوته موسکی‌دی
اشناداستاښایست په دې جنت غونډې وطن کې
پوه نه شومه چې ولې دوزخیانو ته موسکی دی
دا سوی لوی زړه چې مې اشنا نه ټکورېږي
پوهېږمه غرور مې رقیبانو ته موسکی دی

# وږمه

لـه کلي او نـه کـور نـه مې مرګی نه کوي کډه
د ښـکـلـو لـه مـالـتـه مې زړګـی نـه کـوي کـډه
زمـا غـوندې د ډېرو دِوارِه سـترګې به ړندې کړي
بې جـرمـه لـه دې سیمې که لوګی نه کوي کډه
ما وې چې د یار غم به وي میلمه مې ددوو ورځو
مودې وشوې له زړه نه مې اوس دی نه کوي کډه
دا ستا حسن شهید کـړمـه دا ستا مینې ژوندی
ستـا درنـه مې اوس دا سـرلـیونـی نه کوي کډه
پر مــــوږه بـد نصیبو پر وږمــــه هـم نه لګیږي
لـه څنګو د جـانـان نـه خـو سـپـرلـی نه کوي کډه
کـوم داغ کوم یو پـرهـر بـه مې د مـینې کړم تکور
هرداغ چې مې ګوګل کې شي موسکی،نه کوي کډه

# عمر

ډېر په ژړا لړ په خندا تېر شو
ژوندمې نیمګړی نیمه خوا تېر شو
والله که بد مې شي پیرزو درباندې
عمر په بدو که زما تېر شو
له ترمو اوښکو حسرتونو سره
پر ما سبا پر ما بېګا تیر شو
تپوس یې مه کوه چې څنګه به شي
عذاب د مینې و پر ما تېر شو
د ځوانی مست او لوغړن مازیګر
په انتظار د بې وفا تېر شو
خدایږو چې چا ورته ویلي څه وو
رقیب مې څنګ نه وارخطا تېر شو
هاغه چې ستا د زړه تکور و ګلې
ډېر ارمانجن له دې دنیا تېر شو

## يادونه

ستا يادونه ليوني راسره مل دي
رقيبان دې لکه سپي راسره مل دي
دې فلك را باندې رحم هم و نه کړ
ګوزارونه د غرګي را سره مل دي
پروا مه کړه دتندي خال دي تازه کړه
ډېر داغونه پروني را سره مل دي
ښه پوهيږمه له کوره نه تر ګوره
څه دي خپل اوڅه پردي راسره مل دي
د زړه سره ډېر نيمګري ارمانونه
ځواني مرګه ارماني را سره مل دي
داغ دزړه به مې ترمرګه تکوي
ډېر غمونه ځي راځي راسره مل دي

# تکرار

که پردی وطن د سرو ګلونو هار شي
د وطن له یوه اغزي نه مې دې ځار شي
د یورپ دا لور او ښکلي محلونه
زر واري دې صدقه له ننګرهار شي
دا زما یاغي سرکش توپاني فکر
پرې یې مه ږده چې د بل وطن په کار شي
د بل چا خونې ته نه ورځي له شرمه
جنګ زما پر مېنه ځي راځي تکرار شي
مخ ته راشي راته غوږ کې زمزمه کړي
چې یو بل پښتون دې مرګ لره تیار شي
د ژړا سندره پیل شي ختمه نه وي
چې یو بل تندر مې هم پر سر ګوزار شي
دا زما سپېره وطن که پرې جوړېږي
دا زما څو یاغي فکرونه دې په دار شي

۱۱/۲/۱۹۹۷

الماتا

# داغ

ښادي سخته غم اسانه کور ته راشي
بې بلنې بې پرسانه کور ته راشي
په ورتلو راتلو يې ستړی کړم خو ولې
ريبار تش لاس پښېمانه کور ته راشي
ژړا شامدام دېره وي د زړه کور کې
خندا خدايږو ډېره ګرانه کور ته راشي
لا هېر کړی مې خپل غم نه وي يارانو
پردی غم له ترکستانه کور ته راشي
د وصال د شپې درك او پته نه وي
خو بېلتون يې له اسمانه کور ته راشي
لاس و پښې به يې په دواړوسترګوښکل کړم
که يو څوك مې له جانانه کور ته راشي
د زړه زوړ داغ په ژړاژړا تکور کړم
نوی داغ ډېر په ارزانه کور ته راشي

# پردېسه مينه

ای غمه خوشحالي زما پر کلي راوله
جانان مې د زاړه قبر پر څلي راوله
يوځل خودپردېسې مينې سوي سپورږبل ته
سپرليه څو ګلونه ناز ولي راوله
راپېښ که شوي زما د زړه پر وراني هدېرې
ستونه دې په سترګو کې ښاغلي راوله
وختونو که يوه خبر زما په دعا کېږي
دا تللې ځواني بېرته لاس نيولې راوله
ای سويو اسويلو، د زړه نيمګړو حسرتونو
ټکور نه هاغه لرې ليلا ښکلي راوله.

د استاد پژواک په بېلتون

د همغه اروا ښاد په خمکه

# قافله

که یو څو مغرور سرونه پر دار نه شي
قافله به د بې لارو پر لار نه شي
که د اوښکو پر ځای وینې پسې ژاړم
مرور پژواک به خدایږو ایسار نه شي
وخت به ډېر د پسرلیو زېري راوړي
بې له تا به پر دې سیمه بهار نه شي
ستا په شان زه پر پردي وطن کې اوسم
د ژوند ورځې به مې ورځوکې شمارنه شي
چې هر داغ مې د زخمونو تکور نه کا
ستا د وصل شپه دې ګلې سهار نه شي

# ادا

زما یوه او د ستا بله نه شوه
یاره ادا دې هیڅ بدله نه شوه
د زړه په وینو مې هم ولیکله
خو اشنا جوړه ترې غزله نه شوه
د سر بها مې ورته وړاندې کړله
پردۍ روسۍ وه زما خپله نه شوه
د زمانې د ستمګر له لاسه
جوړه زما د زړه کوډله نه شوه
د بېلتانه په اور داغلې سینه
که مې هر څو ټکوروله، نه شوه

۱۱/۴/۱۹۹۳

مسکو

# زموږ کلي

زموږ پر کلي پسرلی نه شته
د ښایستونو هر کلی نه شته
چې پرې ښایسته به وغزل د مینې
هغه ښاغلی لیونی نه شته
هغو نیلي سترګو به بیا وړی وي
چې په سینه کې مې زړګی نه شته
د زړه په وران مالت به څه وکړمه
خپل په کې نه شته دی پردی نه شته
ټکور نه مري له خپل یاره لرې؟
مړ شو ټکور له یاره لرې مړ شو
چې یې په خپل وطن کې ځی نه شته

۱۵/۳/۱۹۹۵

مسکو

# دیدن

د دنیا ښکلي که ټول خواره خواره شي
دا یاران خو به والله که پرې ماره شي

زه به زوړ شم، زه به مړ شم، زه به نه یم
خوشعرونه مې خدای‌مه کړه چې زاره شي

سره غرمه ده له ګرمۍ خولې خولې یم
ستا په غیږه کې یم پروت زما ساره شي

ستا د ناز هرې ادا ته به رسېږي
ارمانونه مې که هر څومره واره شي

ستادیدن به مې زخمي زړه ټکور نه کا
لکه لمونځ د جنازې په ولاړه شي

۱۴/۰۳/۱۹۹۶

# اوښکه

تا پسې زخمي زخمي کابل یمه
اوښکه یم، تنهاکه یم، وربل یمه
ستاپه نوم بد نامه او نېکنامه یم
داسې د قسمت په ژرنده دل یمه
پایمه په زړونو کې، یم نوم د عشق
غمه ستا د هرې لارې مل یمه
ستا په ناز مکیز به زرغونېږمه
گل یم د ببدیا، وهلې جل یمه
مه ویرېږه خیال ته خو را پیښه شه
زړه به دې تکور کړمه غزل یمه

۱۷-۰۶/۱۹۹۶

# سوال

يو غم دی چې زما غريب تر کوره ځي راځي
بېلتون دی، دې جونګړې ته په زوره ځي راځي
سوالونه مې د ورو ستړګو ته ول شي رانه هېر
يو سوال د سپينې خولې خو دې تر ګوره ځي راځي
زرغونه کړم د زړه دښته د اوښکو په باران
سيلۍ د بېلتانه له هره لوره ځي راځي
تر داره رسېدل څه تر دلداره رسېدل دي
ستاد زمونږ تر کلي بې پېغوره ځي راځي
رسوا يې کړې، بد نام يې کړې، په کوز او برعالم کې
کوم نور د محبت چې تر تکوره ځي راځي

۲۲/۰۳/۱۹۹۷

ورومچې
چين

# ثواب

زړه مې ناسته او ولاړه نه مني
عشق عذاب او ثواب دواړه نه مني
بې د يار له ستمونو، اداګانو
دا ظالم زړګی مې واړه نه مني
رقيبان دې سرکوزي له ما،نه غواړي
سرکوزي مې هسکه غاړه نه مني
نه پوهېږم که هر څه ووايم زړه ته
بې وفا پسې مه ژاړه، نه مني
اوس هغه دخوند خوږې خوږې غزلې
له تکور څنې مه غواړه، نه مني

۲۵/۳/۱۹۹۷

چين، دوو ورمچي ښار

# انتقام

د زړه په وران محل کې مې بې مينې نه شته څوک
يـارانــو پــه دې ښــار کې د پوښتنې نه شته څوک
د هـجـر سخـتـه تبـه ده د عـــشــق د لـيــونــي
لــه غـمـه مـري تـنـهـا ، د پيـرزوينې نـه شته څوک
زه دي پــه کــاڼــو ولــم او دی مــا پــه کــاڼــو ولـي
زمــا او د رقـيـب د پـخـلايـنـې نــه شـتـه څـوک
راځــي خـو نـه چـې راشـې بې پـوښـتنې بېرته ځي
پــر حــال مـې په والله د لـورېـينـې نـه شـتـه څـوک
مــدام د انـتـقـام تـيـره يـې لاس کــې وي نـيـولـې
بلوسگر چېرې په شــان د نـازنـيـنـې نه شته څوک

۱۹/۰۲/۱۹۹۶
مسکو

# وربخې

خـدای پـوهـېږي باد به ګـلـه خـبـر راوړي
مـا پـردېس تـه لـه کـابـلـه خـبـر راوړي
قـافلې د حسـن څـي راځـي تـېـرېږي
نـن بـهٔ څـوك لـه وران مـحلـه خـبـر راوړي
د "شمال" شمال يې نه پرېږدي چې خور شي
کـاشکي څوك له خور وربله خبـر راوړي
پـر اسـمان د زړګـي وربخې خورې شوې
کـانـې اوري اوس بـه خـپـلـه خـبـر راوړي
بـيا بـه دا ياغي تـکـور هم "صنوبر*۱" شي
کـه سـبـا ريـبـار لـه "ګـلـه" خـبـر راوړي

---

* دلته اشاره ګل او صنوبرته ده

# فیصله

دلته سرې شونډې سيلونه
هلته رېږې او جنګونه
دلته جام ډک د شرابو
هلته ډک يو بل ته زړونه
دلته مستې نازنينې
هلته کونډې فريادونه
دلته سرې سپينې کوترې
هلته تور تور حجابونه
دلته هر څه ثوابونه
هلته هر څه ګناهونه
اى زما زړګيه وايه هلته ځې که دلته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښايه هلته ځې که دلته اوسې؟
دلته هر څه مينه مينه
هلته هر ځاى وينه وينه
دلته تورې اوږدې زلفې
هلته تور زړونه فکرونه
دلته حسن خنداګانې

هلته مرګ ژوبله ويرونه
دلته نوی ودانېږي
هلته وران کلي کورونه
دلته هر څه اميدونه
هلته هر څه حسرتونه
ای زما زړګيه وايه هلته څې که دلته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښايه هلته څې که دلته اوسې؟
دلته نوی رنګين جام دی
دلته ښه رنګين ماښام دی
هلته نور صبر تمام دی
دلته هر څه ازاد ګرځي
هلته هر ضمير غلام دی
دلته ظلم د مار پښه ده
هلته جوړ ظالم نظام دی
دلته سوله سوکالي ده
هلته جنګ په هريوګام دی
ای زما زړګيه وايه هلته څې که دلته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښايه هلته څې که دلته اوسې؟
دلته يو د وطن غم دی
هلته ټول وطن کې غم دی
دلته يو له بل ځارېږي
هلته يو بل پسې سمې دی
دلته ټول صنم صنم دی

هلته بند نوم د صنم دی
دلــتــه هر قــدم امیــد دی
هلــتــه هر قــدم کــې بــم دی
دلـــتــه جــوړ د خــندا کـلــي
هلــتــه کـلــو کــې مــاتــم دی
ای زمــا زړګیه وایـه هلـته څې کـه دلـته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښایه هلته څې که دلته اوسې؟
دلته جوړښایسته جهان دی
هــلــتــه وران افغانستان دی
دلــتـه هر څه خدایه ډېــر دي
دلته غرق مست په مستی کې
هــلــتــه وړی هــر افــغــان دی
دلــتــه زړونــه ډك لــه مــیــنــې
هلته ژوند ارمان ارمان دی
دلــتــه ژوند پر خلکو اوري
هلــتــه تل د غــم بــاران دی
ای زمــا زړګیه وایـه هلـته څې کـه دلـته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښایه هلته څې که دلته اوسې؟
دلتــه هــر زړګــی ټــکــور دی
هــلــتــه زړه ســوی په اور دی
دلـــتــه یــو لــه بــل ځــاریــږي
هلته ورور دښمن دورور دی
دلته مینه شته ښایست شته

هلته مینه لوی پیغور دی
دلته غم کده پر سر دی
هلته غم په هر یو کور دی
دلته فرق او تمییز نه تشه
هلته سپین زړګی هم تور دی
ای زما زړګیه وایه هلته ښې که دلته اوسې؟
ژر شه لاره راته ښایه هلته ښې که دلته اوسې؟

۱۳/۰۳/۱۹۹۶

مسکو



چل فریب او دوکه ټول دلته روا دي
خو د حق خبره سپینه په کې قحط ده
د هر یو ځیز پریماني ده په دې ښار کې
خو بس یو د زړونو مینه په کې قحط ده
له فلك سره د ښکلو کمی نه شته
خو زما یوه نیازبینه په کې قحط ده
پښتانه دي، پښتونخواده خو افسوس دی
پښتنوالي سره مینه په کې قحط ده
د فرهاد دعوه ګیر ډېر دلته اوسیږي
خوافسوس دی‌چې شیرینه په کې قحط ده
ډېر پرهر کولو ټولو پوهیږي
خو چې داغ ټکور وینه په کې قحط ده

## دعا

لـویـه خـدایـه تـه پـه خـپـله بنـه پوهیږې
حاجت نه شته دی د سـوال او د ځواب
د هجرت په مات کنډول کې راله راکړه
د جـانــان د ګـلابي شونډو شـراب

مسکو
۱۸/۸/۱۹۹٦



## نیمگړی غزل

تـا پســې زخمې زړگی مې جوړ نه شو
زوړ شو خو دا ستا په مینه موړ نه شو
ستــا پـه نوم لیـکلی چـې غزل و مـا
زه په خپله زوړ شوم خو دا زوړ نه شـو



# نیمګړی غزل

ستا ظلمونه ستمونه دومره ډېر دي
که مني نو په والله ورځني تنګ یم
ښه پوهیږم چې ځواني به مې تا لا کړي
بد نصیبه خپل قسمت سره په جنګ یم

# د غم جبل

تا نه وه که ما نه وه خو ورانه شوه
دا د حق خبره کول گرانه شوه
خدایه دې وطن کې ولې هر څه نه
وینه د انسان دومره ارزانه شوه
ستا د غم په جبل کې مې د حق چغه
پورته ان د ظلم تر اسمانه شوه
چا وویل د هجر زهر څه له خورې؟
ما وې ما ته ښېښه له جانانه شوه
خدایږو غورځوي مودمرگ کندې ته
دا قافله کوم لورې روانه شوه
هاغه لیونی پر تا مین تکور
مړه خو یې اوس طبع غزلخوانه شوه





# څلوريځې

هېـــرې به نــه کړم ا غـنم رنګې
په زړګي پاکې پـه رنـګ بدرنګې
د يورپ سپينې ورنه لـوګـی شـه
زمـــا د کلــي لـه يـوې ملـنګې

۱۸/۵/۹۳

مينسك، بلاروسيه



هېرې مې نه دي د کابل اوښکې
ورنــه به جوړ شي لوی دريابونه
خــوږو يارانو دا مـــې بــاور دی
ژر بــه لاهـو کړي ظــالم سرونه

۱۷/۵/۹۳

مينسك



اداګـــانې دي شاهـانو نـه تاج اخـلـي
خدايه خير کړې د وختونو خراج اخلي
نـن يې بيا بـانه او وروځي سره يو شول
پښـتانه شـول لــه مـغلو نه باج اخلي

۲۱/۰۸/۱۹۹۵

مسکو



د يـــارانـــو نـاروااوو تـــه چـــې گـــورم
دي خـپـل زړه خـانـه خراب ته په غصه شم
په محفل کې چې اشنا چا ته موسکی شي
بـې لـه اوره سـر تـر پـایه لولپـه شـم



جوړ محفل کې چا زما تپوس ترې وکړ
وې ویل وي به څوك خو نـه يې پيژنمه
چـا كيسه زما د ميـنـې ورتـه وكـړه
وې ویـل پـریږده، کـنـه يـې پيژنمه









•

## اوښکه

تا پسې زخمي زخمي کابل يمه
اوښکه يم، تنهاکه يم، وربل يمه
ستاپه نوم بد نامه او نېکنامه يم
داسې د قسمت په ژرنده دل يمه
پايمه په زړونو کې، يم نوم د عشق
غمه ستا د هرې لارې مل يمه
ستا په ناز مکيز به زرغونېږمه
ګل يم د بېديا، وهلی جل يمه
مه ويرېږه خيال ته خو را پيښه شه
زړه به دې تکور کړمه غزل يمه